# هیواد

ورځپاڼه

مؤسس: عبدالرووف بېنوا    د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز    یکشنبه د شعبان المعظم ۳ یمه ۱۴۴٦ ق کال، د سلواغې ۱۴ مه ۱۴۰۳ ل کال، دفبرورۍ ۲ یمه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵۳۳ مه، پرله پسې ګڼه ۶۲۳ مه، اتمه دوره


## افغانستان کې د داعش خوارجو لوی شودل د دغې پدیدې لپاره کمپاین دی

د افغانستان اسلامي امارت د افغانستان د بیارغونې لپاره د امریکا د ځانګړي مفتش یا سیګار وروستی راپور رد او له حقیقته لرې بللی دی. د اسلامي امارت مرستیال ویاند ملاحمدالله فطرت ویلي: داعش خوارج افغانستان کې د امنیتي ځواکونو له لوري په ټول قوت له منځته تللي دي. ملا حمدالله فطرت ویلي: افغانستان کې د داعش ډلې تحرکات په جدي توګه څارل کېږي او د دې پدیدې د خطر د مخنیوي لپاره امنیتي او کشفي ځواکونه کافي دي او په دې برخه کې یې ګټور ګامونه اخیستي دي. نوموړي داعش خوارج افغانستان کې ګواښ بلل او په غیرمستقیم ډول لوی ښودل د دې پدیدې لپاره کمپاین بللی او غوښتنه یې کړې، چې داعش ته له کمپاینه دې په کلکه ډډه وشي. اسلامي امارت د سیګار راپور کې افغانستان کې د بهرنیو ډلو شتون رد کړی او هغه یې غیرحقیقي بللی دی. د یادوني وړ ده، چې سیګار په خپل تازه راپور کې داعش خوارج د افغانستان او سیمې لپاره لا هم یو ګواښ بللی دی.

## د اقتصادي کمېسیون تخنیکي کمېټې غونډه وکړه



د اقتصادي کمېسیون د تخنیکي کمېټې ځانګړې ناسته، پرون په مرمرینه ماڼۍ کې ترسره شوه.

د ریاست‌الوزراء د مطبوعاتي دفتر د معلوماتو له مخې؛ په دې ناسته کې د کابل ولایت د ارغندۍ څلورلارې او چمتلي سیمه کې د ترانسپورټ او هوایي چلند وزارت پر ځمکه د خصوصي سکټور له لوري د ټولګېټ جوړولو پر طرحو بحث شوی دی.یاده طرحه له هر اړخیز بحث وروسته، په پرنسیپ کې د تأیید وړ بلل شوې او د ترانسپورټ او هوایي چلند وزارت مسئولینو ته سپارښتنه شوې ،چې په دغو طرحو کې د اړوندو وزارتونو او ادارو اړتیاوې په نظر کې ونیسي او وروسته دې، یادې طرحې د مالي تحلیل په موخه د مالیې وزارت ته واستوي ،چې د مالیې وزارت به یې د مالي تحلیل راپور د اقتصادي کمېسیون تخنیکي کمېټې ته وړاندې کړي.

## د افغانستان او هند ترمنځ سوداګري زیاته شوې

د روان کال په لومړیو لسو میاشتو کې د افغانستان او هند تر منځ د ۷۶۳ میلیونو ډالرو له پاکستان او ایران وروسته د کراچي، چابهار، واګه او بندر عباس د بندرونو له لارې ورسره



په ارزښت سوداګریزه راکړه ورکړه شوې ده.هند له هغو هېوادونو دی، چې افغانستان ډېره سوداګریزه راکړه ورکړه کوي. د صنعت او سوداګرۍ وزارت **۳مخ**

## د اقتصاد وزارت:

## افغانستان کې د بشري مرستو په نامه د مالي سرچینو زیاته برخه د نړیوالو موسسو د لګښتونو لپاره کارول شوې





د افغانستان اسلامي امارت د اقتصاد وزارت، پرون د یوې اعلامیې په خپرولو سره د «سیګار» ادارې د وروستي راپور په غبرګون کې ویلي، چې په افغانستان کې د بشري مرستو په نامه د مالي منابعو زیاته برخه، د نړیوالو موسسو د شخصي لګښتونو لپاره کارول شوې ده.د یاد وزارت په اعلامیه کې راغلي دي: ((د سیګار ادارې په نوي خپور شوي راپور کې چې د تېرو څه باندې درېوو کلونو په موده کې د امریکا له خوا د ۳.۷۱ میلیاردو ډالرو لګښتونو ته اشاره شوې ده؛ د افغانستان پر اقتصادي وضعیت د پام وړ اغېزې نه دي پرېښې,دا مالي منابع دوی خپلو نړیوالو موسسو ته په واک کې ورکړې ،چې ډېره برخه یې دوی د خپلو لګښتونو لپاره کارولې او پاتې یې د بشري مرستو تر عنوان لاندې په بېلابېلو برخو کې خلکو ته ځانګړې کړې وې.)) په اعلامیه کې یادونه شوې چې د امریکا له لوري پر **۳مخ**

## افغانستان د چرګانو غوښې برخه کې پر ځان بسیاشوی

د سوداګرۍ او پانګونې خونې مسئولین وایي: د هېواد د نورو سکټورونو په څېر د چرګانو د غوښې، هګیو، چرګوړو او د دانې په برخه کې بېلابېلې ستونزې شته. د کرنې او مالدارۍ خونې مسئولین هم وایي، چې د چرګانو د روزنې په برخه کې، افغانستان پر ځان بسیا شوی، خو د چرګوړو او هګیو په برخه کې لا هم هېواد ځان بسیاینې ته نه دی رسېدلی. هېواد کې بیا د چرګانو د هګیو د واردوونکو د ټولنې غړي وایي، چې افغانستان ته هره ورځ ۶ میلیونه **۳مخ**

## سږکال له غور څخه سلګونو سیلانیانو لیدنه کړې

د غور ولایت د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست مسئولین وایي، چې په روان ۱۴۰۳ لمریز کال کې د دې ولایت له تاریخي اثارو





او طبیعي جاذبو څخه سلګونو کورنیو او بهرنیو سیلانیانو لیدنه کړې ده.

د یاد ولایت د اطلاعاتو او فرهنګ رئیس مولوي عبدالحي زعیم باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د روان کال په ترڅ کې د غور له تاریخي اثارو، په ځانګړې ډول د جام له منار او نورو لرغونو ځایونو څخه ۲۰۰ بهرنیو او ۳۰۰۰ کورنیو سیلانیانو لیدنه کړې ده.

زعیم زیاته کړې، چې د غور منار جام د نړۍ په کچه دویم لوړ خټین منار دی چې ۶۳ متره لوړوالی لري او د غوري سلاطینو د واکمنۍ د وخت یو ستر معماري شاهکار ګڼل کېږي.

نوموړي وویل، چې د اسلامي امارت له بیا واکمنېدو وروسته په غور کې د امنیت ټینګښت، د ګرځندویي صنعت ته وده ورکول او مناسب مدیریت د دې لامل شوي چې د کورنیو او بهرنیو سیلانیانو په شمېر کې د پام وړ زیاتوالی راشي. **۳مخ**

## هرات کې یوه کارخونه ۷۰ ډوله رنګونه تولیدوي

هرات ولایت کې د رنګ جوړونې د یوې کارخونې مسئولین وایي، چې د دې ولایت په صنعتي ښارګوټي کې یوه کارخونه په ورځني ډول ۵۰ ټنه رنګ تولیدوي.





د افغانستان د فیضي رنګ کارخونې رئیس جمشید فیضي باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې یاده کارخونه هره ورځ تر ۵۰ ټنو پورې رنګ تولیدوي او د کورني بازار اړتیاوې په ښه کیفیت سره پوره کوي. نوموړي زیاته کړې، چې په یاده کارخونه کې ۴۰۰ کسانو ته د کار زمینه برابره شوې او ۷۰ ډوله بېلابېل رنګونه تولیدوي، چې محصولات یې د هېواد نورو ولایتونو ته هم صادرېږي.

د یاد ولایت د اطلاعاتو او فرهنګ رئیس مولوي احمد الله متقي له یادې کارخونې څخه د لیدنې **۳مخ**

## تېرو ۲میاشتو کې له څه باندې ۱۲۲ زره اړمنو کورنیو سره مرستې شوي



د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت په تېرو ۲ میاشتو کې له لسګونه زره اړمنو کورنیو سره د مرستو کولو خبر ورکړی دی.یاد وزارت د یوې خبرپاڼې په خپرلو سره ویلي چې د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت او همکارو موسسو د ګډو همکاریو په ترڅ کې د لېندۍ او مرغومې په میاشتو کې په ټول هېواد کې له ۱۲۲ زره ۴۴۴ راستنو شویو او داخلي بېځایه شویو کورنیو سره مرستې شوې دي. سرچینې زیاته کړې، چې په یادو مرستو کې نغدي، خوراکي، غیر خوراکي، روغتیایي کڅوړې، ژمنۍ البسه، خېمې او نور اړین شیان شامل دي.

د خبرپاڼې د معلوماتو له مخې د یادو مرستو ارزښت څه باندې ۷۲۷ میلیونه افغانیو ته رسېږي.د یادوني وړ ده، چې د یاد وزارت له لوري د تلې، لړم او لېندۍ میاشتو په اوږدو کې هم له ۲۳ زره ۵۴۲ اړمنو کورنیو سره ورته مرستې شوې وې.

## فراه کې د یوه جومات د جوړولو چارې بشپړې شوې

د فراه ولایت د مرکز اړوند په دیګفروش سیمه کې د څه باندې ۱۶ میلیونو افغانیو په لګښت د حضرت محمد (ص) په نامه د یوه جومات د جوړېدو چارې بشپړې او ګټې اخیستنې ته وسپارل شو. د جومات بنسټګر حاجي شاه محمد شیرزاد باختر آژانس ته ویلي ،چې دغه جومات پر ۴ زره متره مربع ځمکه د ۱۶ میلیونه ۷۰۰ زره افغانیو په لګښت د یو کال په موده کې جوړ شوی دی.نوموړي زیاته کړې چې دغه جومات په معیاري بڼه او د ټولو اړینو ملحقاتو په درلودلو **۳مخ**



## د حضوري چمن د غوره تنظیم او استفادې لپاره طرحه چمتوکېږي

د کور او ښار جوړولو وزارت وایي: د شیخ حمدالله نعماني په مشرۍ په یاد وزارت کې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت، د ملي المپیک عمومي ریاست، د عملیاتي ادارې او د کابل ښاروالۍ په غړیتوب ناسته وشوه.دغه ناسته د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله ) د حکم د تطبیق او د کابینې د تصمیم پر اساس جوړه شوه ،چې په کې د حضوري چمن د ملکیت برخلیک معلومولو او ترې د سالمې ګټې اخیستنې لپاره د منظمې طرحې پر جوړولو او پلي کولو خبرې وشوې.شیخ حمدالله نعماني او ورسره د کمېټې غړو یې په ناسته کې د ملي المپیک عمومي ریاست له لوري جوړه شوې درې بُعدي (ترې ډي) ویډیو او اسناد وکتل او په اړه یې دلایل او وړاندیزونه واورېدل.غونډه کې یادونه وشوه ،چې باید داسې طرحه جوړه شي چې له مخې یې په حضوري چمن کې د تکړښت، تاریخي ارزښت، **۳مخ**

سرلیکنه

# کتاب؛ د پوهې خزانه او د امت د ويښتابه راز

د افغانستان د بیارغونې، پرمختګ او د نسلونو د روښانه راتلونکې لپاره تعلیم بنسټیز اهمیت لري، خو له بده مرغه زموږ په ټولنه کې د زده کړې فرهنګ لا هم کمزوری دی. د دې ستونزې یوه مهمه برخه د مطالعې کمښت دی. که وګورو، زموږ اکثره خلک په ټولنیزو رسنیو کې خپل قیمتي وخت ضایع کوي، بې ګټې بحثونه کوي او د علمي، څېړنیزو یا فکري کتابونو لوستلو ته چندان اهمیت نه ورکوي. دا وضعیت زموږ د ټولنې لپاره یو جدي خطر دی، ځکه چې بې‌مطالعې نسلونه، نه یوازې له علمي ودې بې‌برخې پاتې کېږي، بلکې د فکري وروسته پاتېوالي او ناپوهۍ ښکار هم کېږي. کتاب لوستل یوازې د زده کړې یوه وسیله نه ده، بلکې دا د انسان د فکري ودې، شخصیت جوړونې او تصمیم نیولو ورتیا لوړوي. مطالعه د انسان فکري افق پراخوي، د تحلیل او استدلال ځواک یې پیاوړی کوي او د ژوند حقیقتونه ورته روښانه کوي. هغه ملتونه چې د کتاب لوستلو فرهنګ لري، د علم، اقتصاد، سیاست او ټولنیز ثبات په ډګرونو کې تل بریالي وي.د اسلامي تاریخ مطالعې ته که وګورو، د مسلمانانو د زوال یو عمده لامل د مطالعې له فرهنګ څخه لرې کېدل و. هغه زمانه چې مسلمانانو د علم، فلسفې، طب، ریاضیاتو او نورو علومو د زده کړې لېوالتیا لرله، نړۍ یې رهبري کوله. خو کله چې د کتاب لوستلو دود کم شو، د اسلامي نړۍ قوت هم ورسره کم شو.نن ورځ ټولنیزې رسنۍ د معلوماتو یوه مهمه سرچینه ګڼل کېږي، خو د کتاب بدیل نشي کېدای. اکثره خلک ټولنیزو رسنیو ته د مطالعې لپاره نه، بلکې د ساتېرۍ، بې ګټې بحثونو او حتی د ناسمو معلوماتو د خپرولو لپاره مراجعه کوي. دا د دې لامل شوی چې زموږ نسلونه د علمي، څېړنیزو او تاریخي کتابونو له لوستلو څخه لرې پاتې شي.د کتاب لوستلو د فرهنګ دودولو لپاره باید له لاندې لارو چارو څخه کار واخیستل شي:

**د کورنۍ رول:**

مور او پلار باید خپلو اولادونو ته د کتاب لوستلو ارزښت وښيي، د هغوی لپاره د کتابونو ځانګړې مجموعه برابره کړي او د مطالعې عادت وروزي.

تعلیمي ادارې: ښوونځي، مدارس او پوهنتونونه باید د درسي کتابونو ترڅنګ د مطالعې آزاد فرهنګ هم دود کړي، د کتابتونونو ارزښت لوړ کړي او زده‌کوونکي وهڅوي چې پر نصاب سربېره نور کتابونه هم ولولي.

حکومتي پالیسي: دولت باید د کتاب چاپ، خپرونې، ۳مخ

# حکومت افغانستان خواستار تعامل با تمام کشورهای جهان است



عزیزی

حالا که امارت اسلامی پیروز شده و نظام اسلامی در کشور تحکیم یافته است، در سراسر افغانستان صلح،ثبات و آرامش تامین شده است .

امارت اسلامی افغانستان خواستار تعامل با تمام کشورها می باشد،به هیچ گروهی اجازه استفاده از خاک این کشور علیه هیچ کشوری را نمی دهد،وضعیت امنیتی این کشور بهبود یافته است و گروه های تروریستی هیچ وجود ندارد،از این جهت هیچ نوع تهدید متوجه کشور های منطقه بخصوص کشور های همسایه نیست.

امارت اسلامی افغانستان توانسته با دیپلوماسی فعال،روابط خوب سیاسی ،اقتصادی و فرهنگی را با کشور های منطقه و برخی کشور های جهان برقرار کن و ما شاهد سفرها و حضور گسترده دیپلومات های کشور های خارجی به افغانستان هستیم که در این اواخر افزایش یافته است ،کشور ها این را درک کرده اند که یگانه راه بهتر و سازنده، تعامل با امارت اسلامی می باشد.

امارت اسلامی افغانستان هیچگاه در روابط خود با کشور ها مشکل ندارد و خواهان برقراری روابط دیپلوماتیک با همه کشور ها می باشد.این در حالیست که در این اواخر حضور گسترده و سفر های مقامات بلندپایه مختلف کشور های خارجی به داخل افغانستان افزایش یافته است.متاسفانه که دوری بعضی کشورها به خصوص امریکا و کشور های استکباری جهان در ادامه همین سیاست های غلط و نادرست خویش در برابر امارت اسلامی افغانستان است که به اثر فداکاری، خود گذری و به اساس اراده قاطبه مردم مؤمن و قهرمان افغانستان در این سرزمین مرد خیز و حماسه آفرین تشکیل گردیده و به دوره های سیاه وحشت ،استبداد و اشغال خاتمه بخشیده است،جبهه گیری نموده و می خواهد با استفاده از فشارهای سیاسی و تحریم های اقتصادی یکبار دیگر حضور خود را به نحوی از انحا به این کشور مجاهد پرور تثبیت نماید که این آرمان را به گور خواهند برد.خلاف توافقنامه دوحه تحریم های زیادی را علیه امارت اسلامی افغانستان وضع کرده اند و همواره تاکید می ورزند و گویاتا زمانی که امارت اسلامی افغانستان به خواسته های کشور های مغر ض سازش ننماید،این تحریم ها ادامه خواهد داشت.

در واقع جامعه جهانی در راس امریکا برای اینکه امارت اسلامی افغانستان به خواسته ها و فرمایشات آنها عمل نکند تحریم ها را ادامه می دهند و تلاش می نمایند تا از طریق اهرم فشار،منافع ستراتیژیک شانرا در افغانستان تامین نمایند.

در حالی که امارت اسلامی افغانستان یک کشور آزاد و مستقل می باشد، نه تنها در امورات کشور های خارجی دخالت نه می‌کند و به کشور های خارجی این حق را نمی دهد که در امور حکومتداری داخلی افغانستان مداخله کند.

مدت دو سال از پیروزی امارت اسلامی افغانستان می گذرد و یگانه راهی که تمام مشکلات ها را حل می سازد تعامل با افغانستان می باشد. بناءً جامعه جهانی در راس امریکایی ها هرچه زودتر این تحریم های وضع شده را لغو کرده و برای پایان چالش ها و بحران های موجود تعامل با امارت اسلامی افغانستان را روی دست گیرند،زیرا در صورت تداوم این تحریم ها،زیادتر بالای مردم مظلوم افغانستان اثر می گذارد در آنصورت مقصر اصلی آن جامعه بین‌المللی خواهد بود.بی توجهی به چالش ها و مشکلات شهروندان کشور از سوی جامعه بین‌المللی برای قاطبه مردم افغانستان قابل قبول نبوده و باید مسئولیت های جهانی خود را در قبال اوضاع زندگی آنها بی طرفانه انجام بدهند.

در غیر آن به سود هیچ طرفی نبوده، بلکه با گذشت هر روز دامنه مشکلات شهروندان را چند برابر ساخته از این رو تا وقتیکه این تحریم ها برداشته نشود و تعامل صورت نگیرد چالش ها و بحران ها بیشتر شده می‌رود و قربانی اصلی این تحریم ها مردم فقیر و مظلوم افغانستان خواهند بود.

# یاري د زور خبره نه ده



عارف الله

که د افغان مؤمن او مېړني ملت تېر پنځه زره کلن تاریخ ته ځغلنده کتنه وکړو، نو ثابته به شي چې د ذکر شوي تاریخ او عمر زیاته برخه یې له نړیوالو استعماري او استکباري طاقتونو او بد معاشانو سره او په خپلمنځي شخړو کې تېره شوې ده. له مقدوني سکندره در واخله تر انګریزي ښکیلاک ،شوروي اتحاد او ان د امریکا ترقیادت لاندې د ناټو ائتلافي ځواکونو او زموږ د هیواد، له یو شمېر پردیو پورې تړلو لنډغرو سره چې د دې ملت ملي شتمني یې و لوټله او د بهرنیو هیوادونو د ځمکنیو ځواکونو د نده یې پرمخ وړه، په خونړیو جنګونو کې په دې موخه ښکېل شو چې د زور ، تزویر او غلامۍ ځغ ته غاړه نږدي او دخپل ګران او محبوب هیواد د استقلال او خپلواکۍ لپاره یې د بهرنیو یرغلګرو پر خلاف مقدس جهاد او مبارزه کوله. که څه هم په دغو نا برابرو جنګونوکې زموږ مؤمن او مېړني ملت په میلیونونو شهیدان ورکړل، معیوب او معلول شول او همدارنګه بهرنیو هیوادونو ته مهاجراو کډوال شول، د بې وطنۍ ستونزې او کړاوونه یې وزغمل، قربانۍ یې ورکړې او د زیاتو او بې دریغه قربانیو په پایله کې یې د وخت فرعونانو ته دالله رب العزت په مرسته شرموونکې ماته ورکړه او خپله آزادي یې ترلاسه کړه. اوس چې لله الحمد زموږ د ټولنې له ټولو غوره قشر دینی علماوو کرامو د واګو چارې په لاس کې اخیستي او تر یوه قیادت لاندې د اسلامي نظام تر سیوري لاندې د ارامۍ سا اخلو او خوښي څرګندوو، د الله رب العزت شکر پرځای کوو چې موږ ته یې د طاغوت د لښکرو د ماتولو او بریا ویاړ راپه برخه کړ، نو لازمه ده چې زموږ چارواکي له هغوی څخه د خپلو شهیدانو د غرامت غوښتنه او پوښتنه وکړي، ځکه دا زموږ حق دی، پرځای د دې چې هغوی زموږ ملي شتمني کنګل کړي او یا هم زموږ پر مشرانو د بندیزونو او د سفر کولو تحریم وضع کړي او یا هم د بیا راتلو ګواښ کوي او ګوتڅنډنه او یا زموږ په کورنیو چاروکې خپل فرمایشات عملي کوي،نو دا پوچه ، بیځایه او با بیزه خبره ده .که زموږ ملت له اسلامي نظامه پرته په بل څه راضي کیدلی، نو دا په میلیونونو شهیدان او په لکونو معلولین د څه لپاره، ۳مخ

# هغه چلوونکي ترافیکي پېښې رامنځ ته کوي چې د جمهوریت پرمهال یې په بډو لایسنس اخیستی وي



حیات الله حلیم

له هرڅه لومړی، یومثال ته اشاره کوو، په امریکا کې یوه محلي تلویزیون له یوه ۱۰۵ کلن متقاعد سره چې اوس یې هم د موټر چلولو توان درلود، په دې اړه مرکه درلوده چې ولې یې د پوره اتیا کاله موټرچلونې په تاریخ کې د کومې ترافیکي پېښې ریکارډ نه دی ثبت شوی ؟

ده وویل : ما له درې ځلې ناکامېدو وروسته په ډېره سختۍ لایسنس ترلاسه کړ،خوکله مې چې لایسنس ترلاسه کړهغه ترافیکي مقررات چې د لایسنس لپاره شرط اېښودل شوي وو، هغه به مې کلک رعایتول، خو له ټولو مهمه دا چې ما له ځان پرته ټولوهغو چلوونکوته چې په ګډه به مو له مسیرڅخه ګټه پورته کوله، د لېونیانو په سترګه کتل اوپه سړک به مې د دوی له غلطۍ څخه ځان ساته، همدا وجه وه چې تر نن پورې د کومې ترافیکي پېښې ریکارډ نلرم.

موږ خپلو خپلو چلوونکو ته دا نه وایو چې پر سړکونود ځان او واسطې د ساتنې لپاره یو بل ته، د لېونیانوخطاب وکړي خو ترې کم هم نه دي، ځکه سږنی کال د ترافیکي پېښوله وجې یو مرګونی کال و چې دوو زرو کسانوخپل ژوند پکې له لاسه ورکړ او، اووه سوه نورټپیان شول، وروستۍ دوې خونړۍ پېښې د کابل قندهار په سړک په غزني کې وې چې پنځوس کسان پکې مړه او څلوېښت نور پکې ټپیان شول او په سلګونواو زرګونو کورنۍ یې د ویرپر ټغرکښېنولې خوددغو چلوونکوهویت معلوم نشو چې دوی څوک وو؟ آیا لایسنس یې درلود؟ ترافیکي مقرارات ورښودل شوي وو؟ ددومره لویومسافر وړونکوبسونو د چلولو توان یې درلود او که نه ؟ په هرصورت په دې شپو ورځوکې یو ځل بیا په رسنیو کې د ترافیکي پېښو د مخنیوي په اړه خبرې اترې تودې شوي اوهره رسنۍ هڅه کوي چې د چلوونکو، سپرلیواود عامه ذهنیت نظرونه را غونډ او د تجربه لرونکو کسانو جوړوونکي نظریات د ترافیکي



پېښو د کنټرول لپاره خپاره کړي، خولیدل کېږي او اورېدل کېږي چې سپرلۍ د چلوونکو له ګرندیتوب اوچلوونکي له سپرلیوڅخه شکایت لري چې د لارې په اوږدو کې دوی تیزتګ ته اړباسي او زیاتره چلوونکي بیا په سړک د پلي تېرېدونکو عابرینو د نه پاملرنې له وجې هم شکایت لري، دا ټولې هغه پلمې دي چې خود به د ترافیکي پېښې په صورت کې د برائت لپاره راوړل کېږي، ځکه دا خو طبیعي ده کله چې پېښه را منځ ته کېږي نود ځان د خلاصون لپاره به د چلوونکو لخوا حتمي او ضروري یوه رښتیا او درواغ پلمه راوړل کېږي، خودعامه نظرسنجي نتیجه بیا داده هغه چلوونکی چې ترافیکي پېښه را منځ ته کوي، اصلاً پر ترافیکي اصولوعیارچلوونکي نه دي او ټول هغه کسان دي چې د جمهوریت پرمهال یې په واسطو اویا د بډوپه ذریعه لایسنسونه اخیستي دي، دغه کسان باید د څېړنو لپاره بندي او یا په عذر پرې نه ښودل شي، په پېښه اود چلوونکي په څرنګوالي باید پلټنې وشي چې آیا لایسنس لري که نه؟ په نشه یې توکو روږدی دی که روغ دی ، سلوکي انحراف لري او که سالم دی، ځکه یو شمېر داسې چلوونکي هم شته چې کومه بله واسطه ترې مخکې شي نو د ده په وجود اوربل شي اوپښه اکسلیټرته ورکړي، یا ټایرو ! څومره یې چې توان وي په هغه سرعت ځغلي، چې دا وړ کسان ۳مخ

# وېره د ګڼ شمېر فعالیتونو د ټکني کېدو او ختمېدو پیلامه ده

عبدالرحمن فضلي

دا یو واقعیت دی مشروع او په اصولو برابر شخصي کاروبار تاسو ته د ځواکمنتیا حس درکوي او په دې سره کولای شئ، چې خپل د خوښې کاروبار پیل کړئ او د پرمختګ لوړو ته ورسېږئ. په خپلو کارونوکې دکامیابی لپاره د خپلو فکرونو، هیلو او کاروباري انګیزې لپاره کولای شئ، غوڅ تصمیم ونیسئ او خپل خوبونه په رښتیا بدل کړئ.

بریالي کسان هېڅکله هم له بریا، پوهې، تدبر او شهرت سره نه دي زیږېدلي؛ بلکې د بریا او شهرت لپاره یې تل مبارزه او نه ستړي کیدونکې هڅې کړې او د همدغو هڅو په پایله کې نن په خپلو کارونو کې بریالي کسان او د نورو کسانو لپاره شتمن دي.

که چیرې څوک غواړي یو بریالی سوداګر شي او له خپل ځانه ورهاخوا د خپلې کورنۍ او ټولنې لپاره خیر رسوونکی شتمن کس وګرځئ؛ نو دا ناشوني نه ده، خو دا چې (څنګه کولای شو د خپلې کورنۍ او ټولنې لپاره یو ښه خیر رسوونکی پانګوال شو؟) د ټولنې هر وګړی د دې هوډ او وړتیا لري، ترڅو یو ښه سوداګر او په خپل ژوند کې یو شتمن خیر رسوونکی کس شي او دا په رښتیا هم ستاسو لپاره غوره پیل دی.

د سوداګرۍ او کاروبار نړۍ ته ننوتل او پکې مخ پر وړاندې تلل له ګڼ شمېر ستونزو ، ننګونو او خنډونو سره مل مزل دی. که چیرې غواړئ د سوداګرۍ نړۍ ته ور د ننه شئ نو اړ یاست چې خپل ټول ځواک راټول او د ستونزو پر وړاندې ترې ګټه پورته کړئ. یو بریالي سوداګر تل د قوي ارادې درلودونکی وي. قوي اراده یعنې کله چې ټوله نړۍ ستاسو پر وړاندې خنډ شي او تاسو ته د ماتې او تسلیمېدو خبرې کوي؛ خو تاسو خپل مزل او ګامونه له پخوا هم ځواکمن او ګړندي کړئ.

د یو بریالي سوداګر جوړېدو لپاره اړ یاست له تنبلۍ او آرام ژوند څخه لاس واخلئ. اړ یاست د خپلو کاروباري موخو د ترلاسه کولو په موخه هره ورځ په ساعتونو، ساعتونو کار وکړئ، اړ یاست د ګڼ شمیر ننګونو لپاره پوره چمتووالی ولرئ .

له معمول سره سم هر څوک کوښښ کوي، له ستونزو او خطرونو لرې واوسي، خو د یو بریالي سوداګر جوړېدو لپاره اړیاست ګڼ شمیر خطرونو ته غاړه کېږدی. په یاد ولرئ خطرونه او ستونزې تل نوې فرصتونه زیږوي. له علمي اړخه هم د اقتصاد په علم کې یو اصل دا بیانوي؛ چې ډېر خطر منل، ډېره ګټه راوړي، خو تر ټولو اړینه ده، چې هڅه وکړی پر دې ځان پوه او یعقیني کړی کوم کار ته، چې تاسو د خطر منلو هوډ کړی، آیا دا په رښتیا هم ستاسو لپاره او ستاسو د بریا لپاره خورا اړین دی او که نه؟.

که چیرې تاسو خپله پر خپل ځان باور نه لرئ؛ نو له بل چا به څه تمه ولرئ. د یو بریالي سوداګر جوړېدو لپاره اړیاست ځان په دې پوه او مطمئن کړی چې تاسو د غوره کارونو کولو تر ټولو ښه وړتیا لرئ او دا چې کولای شئ هرڅه له بل هر چا ښه مدیریت، کنټرول او ترسره کړئ، پر خپل ځان باور پر ستاسو د غوروالي او ځواکمنتیا رښتینې هنداره ده او ستاسو بریا تضمین کوي. په یاد ولري؛ خلک تل د هغو ۳مخ





# افـــغـــان اعـــلانـــات

## اطلاعیه پوهنتون

پوهنتون پولی تخنیک کابل مقدار (۳۹۱۲۲) کیلو گرام چوپ خشـک درختان خویش را بعـد از موافقه وزارت محـترم مالیه به تاریخ ۱۴۰۳/۱۱/۲۱ به لیلام میسپارد.بناء اشخاص ، شرکت ها ، تصدی های دولتی و مشتبثین خصوصی که خواهش اشتراک در جلسه داوطلبی را داشته باشند درخواست هـای خویش را به ریاسـت پوهنتون پولی تخنیـک کابل بسپارند و تضمین نقدا اخذ میگردد.۹۰۱۹

## اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه

محترم سـید عارف روفی فرزند سید روف ولدیت سـید نـور خان دارنـده تذکره نمبر ( ۱۳۹۹-۰۹۰۱-۳۹۶۲۴) مسـکونه اصلـی ولایت خوست مالک امتیاز دواخانه ایوب خوسـتی واقع ناحیه دوازدهم ولایت کابل معینیـت غـذا و ادویه عـارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه خویش بالای محترم عبیـد الله ایوبی فرزنـد صدیقی الله ایوبی ولدیـت محمد ایوب دارنده تذکره شـماره ( ۱۳۹۷-۱۲۰۰ ۰۰۵۲۰-) مسـکونه اصلـی ولایت خوست گردیده است .

اشخاص موسسـات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشـته باشـند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۰ روز بـه آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانسـتان واقـع ده افغانان تعمیر قبلـی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند. ۹۰۱۴

## اطلاعیه داوطلبی پشتنی بانک

به اسـاس قـرار قضایـی نمـبر ۱۹۰ مورخ ۱۳۹۰/۵/۱۹ محکمـه ابتدائیـه تجارتـی ولایـت کابـل و تجویز نمـبر ۴۱۷ مورخ ۱۴۴۶/۵/۲۳ ریاسـت محکمـه اختصاصی و محضر تاریخـی ۱۴۴۶/۷/۵ هیت تطبیق ،یک دربند حویلی مندرج قباله شرعی نمبر ۹۶۳/۷ مورخ ۱۳۸۷/۳/۲۰ اسـمی ذکر الله فرزند ملک خـان واقع کارته پروان که از طرف شرکت کابل تریدنگ در مقابل اخذ قرضه تحت تضمین پشـتنی بانک می باشد از طریق داوطلبـی / مزایده به فروش می رسد.

بناء اشـخاص حقیقی و حکمی که تقاضای خرید آنرا داشته باشند میتوانند درخواست های خویش را بعد از نشر اعلان الی مدت ۱۰ یوم به ریاست حقوق ولایت کابل واقع چهار راهی پشتونسـتان وات و یا مدیریت عمومی حصول تمویل مالی بانک بسـپارند. و به اطلاع مسـولین شرکت کابل تردینگ و مالک جایدا نیز رسـانیده میشـود تا در مجلـس داوطلبی حضور یابنـد در غیر آن مسولیت بعدی بدوش بانک نخواهد بود.

## د پښتنی بانک خبرتیا

د کابل ولایت د ابتداییـه تجارتی محکمې ریاسـت د ۱۳۹۰/۵/۱۹ نیټـی (۱۹۰) ګنـې پریکړې او د اختصاصی محکمی ریاسـت د ۱۴۴۶/۵/۲۳ نیټـې ۴۱۷ تجویز او د تطبق هیـت ۱۴۴۶/۷/۵ نیټـی محضر به اسـاس ذکر اللـه د ملک خان زوی په نامه یو باب حویلی چې د ۱۳۸۷/۳/۲۰ نیټی (۷پر ۹۶۳) ګنـې شرعی قابلې درلودونکـی دی د کابل کارتـه پروان په سـیمه کـې موقعیت لري کابل تردینګ د پور پر بنسـټ د بانک تر تضمین لاندې قرار داد لـري د داوطلبی او مزایده له طریقه پلورل کیږي.

هغه قدرمن حقیقي او حکمی اشخاص چې د پیریدلو غوښـتنه یې لري کولای شي خپل غوښـتنلیک د خبرتیا لـه خپریدو څخه تر ۱۰ ورځـو پوری د کابل د حقوق ریاسـت او د بانک د پـور ټولونې لوي مدیریت ته وسپاری .

د کابـل تردینګ شرکت مسـولین ته خبر ورکول کیږی چې پـه داوطلبی او مزایدې جلسـه کې ګدون وکـړي تـردی پرته به راتلونکـی مسـولیت د بانـک پرغـاړه نه.۸۹۸۷

## اطلاعیه به کرایه دهی

شرکـت ملی بس در نظـر دارد ، یک باب ورکشـاپ تخنیکی گاز و پایه های توزیع آنـرا واقع زنـده بانـان ناحیه شـانزدهم شـاروالی کابل که در کل موازی ۱۵۰۰ متر مربع زمین را احتوا مینماید . با ملحقات آن که شـامل ۴ پایه توزیع تیـل فعال و ۱ پایه نمادیـن غیر فعال ۱ پایه توزیـع گازفعال ۱ پایه نمادین غیر فعـال و دفاتر کاری مجهز در دو طبقه با سیسـتم برق ، آب و غیره . کرایه ابتدائی آن ماهانه مبلغ (۲۵۰۰۰۰) دو صـد و پنجاه هزار افغانـی در نظر گرفته شده اسـت از طریق پروسه داوطلبی برای مدت ۳ سال به کرایه بدهد.

شرکـت هـای تجارتـی ، لوژسـتیکی و گاز تخنیکـی کـه مطابق فصل سـوم ماده شـانزدهم قانـون تـدارکات واجد شرایط باشند درخواستی های شانرا ضم فوتوکاپی جواز معتـبر و تذکـره تابعیـت از تاریخ نـشر اعلان الی مـدت ۲۱ یـوم تقویمی به مدیریـت عمومی قـرار داد جایـداد های شرکت امارتـی ملی بس واقع زنـده بانان تسـلیم داده شرطنامه را در بدل مبلغ ۲۰۰۰ افغانی دریافـت و ملاحظه میتوانند تضمین طبق قانون نقدا اخذ میگردد.

همچنان ذریعه کاپی هذا به مسولین محترم شرکت لوژستیکی علی کامل مستاجر فعلی جایـداد متذکره هدایت داده میشـود تا به زود ترین وقت ممکنه به مدیریت عمومی مالـی شرکـت امارتـی ملی بـس مراجعه نموده قبل از برگزاری جلسـه داوطلبی تمام وجایـب تادیاتـی خویـش را تصفیه نموده اطمینان بخشید .

در غیر آن از اشـتراک در جلسـه داوطلبی محروم شـناخته شده حق شـکایت را هم ندارند.۹۰۲۶

## اطلاعیه به کرایه دهی

شرکـت ملی بس در نظـر دارد ، یک باب ورکشـاپ تخنیکی گاز و پایه های توزیع آنـرا واقع زنـده بانـان ناحیه شـانزدهم شـاروالی کابل که در کل موازی ۱۵۰۰ متر مربع زمین را احتوا مینماید . با ملحقات آن که شـامل ۴ پایه توزیع تیـل فعال و ۱ پایه نمادیـن غیر فعال ۱ پایه توزیـع گازفعال ۱ پایه نمادین غیر فعـال و دفاتر کاری مجهز در دو طبقه با سیسـتم برق ، آب و غیره . کرایه ابتدائی آن ماهانه مبلغ (۲۵۰۰۰۰) دو صـد و پنجاه هزار افغانـی در نظر گرفته شده اسـت از طریق پروسه داوطلبی برای مدت ۳ سـال به کرایـه بدهد. شرکت های تجارتـی ، لوژسـتیکی و گاز تخنیکی که مطابق فصل سـوم مـاده شـانزدهم قانون تدارکات واجد شرایط باشـند درخواستی های شـانرا ضـم فوتوکاپی جـواز معتبر و تذکـره تابعیت از تاریـخ نشر اعلان الی مدت ۲۱ یوم تقویمی بـه مدیریت عمومی قـرار داد جایداد های شرکـت امارتی ملی بـس واقع زنده بانان تسـلیم داده شرطنامه را در بـدل مبلـغ ۲۰۰۰ افغانـی دریافت و ملاحظـه میتوانند تضمین طبـق قانون نقدا اخـذ میگردد.همچنان ذریعـه کاپی هذا به مسـولین محترم شرکت لوژسـتیکی علی کامل مستاجر فعلی جایداد متذکره هدایت داده میشـود تا به زود ترین وقت ممکنه به مدیریت عمومی مالـی شرکت امارتی ملی بـس مراجعه نموده قبل از برگزاری جلسـه داوطلبی تمـام وجایب تادیاتـی خویش را تصفیه نموده اطمینان بخشید .

در غیر آن از اشـتراک در جلسـه داوطلبی محروم شـناخته شده حق شـکایت را هم ندارند.۹۰۲۶

## اطلاعیه مفقودی

یک قطعـه قبالـه شرعی نمـبر۱۷۷۶/۳۶۹ مـورخ ۱۳۴۶/۳/ ۳۱مرتبه محکمه ابتدائی به اسم محمد میر و شـیر محمد ولدان گل میـر ولدیت میـرزا میرمفقـود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۲۲

## اطلاعیه مفقودی

یـک جلد کتابچـه صفایی مربـوط ناحیه سـیزدهم به اسـم عبدل آغا فرزنـد محمد یوسـف مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۲۵

## اطلاعیه مفقودی

یک جلد پاسـپورت تجارتی به اسم محمد عارف فرزند محمد اسـحق مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۱۵

## اطلاعیه مفقودی

یـک قطعه قبالـه شرعی نمـبر ۲۰۳۲/۳۲۸ مـورخ ۱۳۲۴/۷/۱۲مرتبـه محکمه چهار دهی کابل به اسـم محمد داود فرزند صالح محمد ولدیت فقیر محمد مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۱۳

## اطلاعیه مفقودی

یـک قطعه قبالـه شرعی نمـبر ۲۰۳۱/۳۲۷ مـورخ ۱۳۲۴/۷/۱۲ مرتبـه محکمـه چهاردهـی کابل به اسـم محمد داود فرزند صالـح محمد ولدیـت فقیر محمـد مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۱۲

---

### ویره د ګڼ شمېر فعالیتونو ...

کسانو پلوي کوي؛ کوم چې تل پر خپل ځان باوري او غښـتلی ښـکاري.ویره د ګڼ شمېر فعالیتونو د دریدو او ختمولـو پیلامه ده. یو بریالي سـوداګر تل په اړینو او جدي تصمیم نیولو کې دچټکې تصمیم‌نیونې‌خواکمنتیالري او نه غواړي د خپلې ویرې له مخې فرصتونه له لاسه ورکړي.بریالي سوداګر هیڅکله هم په یوازې ځان د بریا تر بدیده نه دی رسیدلی؛ بلکې د بریالي سـوداګر تر شـا تل یو بریالي کاروباري ټیم شـتون لري. کوښښ وکړئ، د کاري ټیم غړي مو داسې کسان وي،چې ستاسو لپاره د قدر وړ او تاسو سره د ګڼ شمېر مشترکو موخو، خاصیتونو او عاداتو درلودونکي وي. دیـوې علمـي او څېړنیـزې سروې له مخې هغه سـوداګر ،چې لږ تر لږه د یو کاروباري شریک درلودونکي وي؛ د هغه سـوداګر په پرتله چې پـه یوازې یې کاروبار پیل کړئ تر ډېره بریالی دی.اریکې د انسان په ژوند کې له ټولو اړینې دي. ښه ملګري درلودل تل ستاسو د بریالي او روښانه راتلونکې وړاندوینه کوي. د یوبریالي سـوداګر جوړیدو لپاره اړیاست تل اړیکې جوړې، کنټـرول او وپالئ. بریالي کاروباریـان تل له هر څه زیـات اړیکو ته ارزښت ورکوي. له سـوداګرو، پیرودونکو، پلورونکـو او ګڼ شـمېر نورو مسـلکي او غیر مسـلکي کسـانو سره اړیکې درلودل او جوړول د کاروبار په پراختیا کې بنسټیز رول لوبوي او د یو بریالي سوداګر جوړیدلو لپاره لاره هواروي.کله چـې د خپل ځان خیال نه شئ سـاتلی؛ نو څنګه کیدای شي دومره لوی کاروبار کنټرول او وچلوئ؟. بریالي سوداګر تل د کاروبار ترڅنګ خپل ځان او روغتیا ته ارزښـت ورکوي. هڅه وکړئ د کاروباري او مسلکي ژوند او بوختیاوو تر څنګ سپورټ کول، له ملګرو سره وخـت تېرول او خپلې کورنۍ ته وخت ورکول مو د ورځنیو چارو برخه وګرځوئ.دا چې کاروبار کول او بریالي سـوداګر جوړیدل تر ډېـره بریده په کومې خاصې ځانګړې پورې تړاو نـه لري او دا چې ډېر کسـان د پوهنتون نه لوستلو او د تجارت اړونـد زده کړو د نه شـتون سره- سره بیا هم بریالي کاروبار لري؛ خو د مسلکي او تجارتي اړوندو زده کړو شـتون ستاسـو بریا چټکه، تضمینوي او په کاروبار کې مو د ماتې بیلانس را ټیټوي. نو په دې توګه که چېرې غواړئ یو غوره او مسلکي سـوداګر شئ؛ ښه به دا وي ، تر خو د تجارت اړوندې زده کړې ترلاسـه کړئ.دا چـې اوس مو د کاروبـار پیلولو او بریالي سوداګر جوړیدلو هوډ کړئ، اړیاست له کاروباري پلانونو ورهاخوا د پیسو د سپما او مدیریـت په هکله هم فکر وکړئ؛ ترڅو د کاروبـار پیل کولو پر مهال له مالي پلوه ونه ګواښل شئ.بریالي سوداګر تل د نویو څېزونو د زده کـړې په هکله فکر کوي. هڅه وکړئ د اړیکو ټینګولو، خلکو تـه د خبرو کولو، لیکلو، نوې ژبې زده کولـو، نوې ټکنالوژۍ کارولو، رهبریت او مدیریت فن زده کولو او نورو ګڼ شمېر مهارتونو ترلاسه کولو، ودې او لا ښه والي هڅې مو دوامداره وساتئ.

### یاري د زور ...

خو دا یـوه خبره په زغرده کـول غواړم چې زموږ ملت نه غلام و، نه غـلام دی او نه به غلام شي، دغه ارمانونه ډېرو استعمار ګرو له ځانونو سره ګورته وړي او که بیا هم یو له بل څخه عبرت نه اخلي او خپل زور ازمایي شاید پایله یې له هغوی بدتره او په نابودۍ منتج شي لکه چې پښتو لنډۍ ده :

یاري د زور خبره نه ده
لالي ته وایه چې خوله سمه خوځوینه

### هغه چلوونکي ...

ترټولو زیات ناروغ او د مسافر وړونکو عراده جاتـو رول تـه باید کښېنـې نه نـول شي، یو شـمېرنوریبا پـه اوږدو لارو دلویو مسـافر وړونکـو موټـرو د چلولـو فزیکـي توان نلـري، ډنګراو په بـده ورځ ککـړ وي، دا کسان هم باید په نښـه شي، ځکه د پنځوس شپیتوکسـانوژوند ورپورې ترلـی وي، کوم چلوونکي ته چې لایسـنس ورکول کېږي ، مسـئولین باید د هېوادوالو مرګ او ژوند ته پاملرنه ولري، هغه باید په تمامه مانا وڅېړل شي همدارنګه هغه چلوونکي چې پښېنې رامنځ ته کوي، باید وکتل شي چې لایسنس یې له کومې مرجع ترلاسـه کړی، د ترافیکـي اصولوپه کورسونو کې حاضري او غیرحاضري لري که نه؟ د ازموینې نتیجه یې باید ارزیابي شي.

پـه دې اړه د ترافیکوهغه منسـوب هم باید مسـئول وګڼل شي چې د ده په لایسـنس کې یې لاسـلیک کړی دی، ځکه کېـدای شي دا لاسلیک پرته له ازموینې په غیاب کې ترسره شـوی وي، د جمهوریت پرمهال په ولایتونو کې داسـې لایسـنسـونه توزیع کېـدل چې لایسنس به یوه ولایت کې او چلوونکي به بل ولایت کې و.

په دې اړه د ستونزو د حل لپاره بل سالم وړاندیز دادی چې له کابل څخه ترهرات پورې تقریباً اتلس سـاعته لاره ده چې دلویو سرویسونو( تنها ) چلوونکـي یې په یوه دمه ترسره کوي، دلته خود ترافیکي مسئولینو ګناه هم ثابتېږي، ځکه لاره ډېره اوږده ده او دیوه چلوونکي له توان څخه لوړه خبره ده.

هره واسـطه باید ضرورده چلوونکي ولري او له هرو دوو سـاعتونو وروسته بدل او په نوبت سره رول ته کښېني ، لنډه د هغه کسان چې لوی مسافر وړونکي سرویسونه یا د دوی په اصطلاح په لویو لارو VIP سرویسـونه چلوي باید د یوې مسـافر وړونکي الوتکې د (کو) پیلوټ په شان ذهني او فزیکي ارزونه یې وشي او هغه کسان چې فزیکل کمزوري یا نـارغ وي، د چلولو اجازه ورنه کړل شي، د سړکونو د خرابوالي سـتونزه هم پلمه را وړل کېـږي، خـو دا پلمه په ترافیکي پېښـو کې ځکه عذر نه ګڼل کېږي، چېرې چې سـړک خراب وي هلته وسایط هم ورو حرکت کوي د منسـوبینو دنده ده چېرې چې پر سـړکونو ترافیکي نښې نشته د سړک له پخولو د مخه یې باید غم وخوړل شي، کله چې سړک پوخ شي او ترافیکي علایم ونلري نو څه به را منځ ته کېږي؟

### له غزې ترانګې ...

او فلسطینیان دې پر خپله خاوره ارام ژوند ته پرېږدي.

### امریکا کې د یوې...

د فیلادلفیا ښاروالۍ ویلي، چې لا هم د زیانونو کره شمېرې معلومې نه دي، خو شو کورونه او وسایط سخت زیانمن شوي دي.

### کتاب؛ د پوهې ...

ژباړې او د مطالعې ترویج ته ځانګړې پاملرنه وکړي. د کتابونو بیې باید ارزانه او خلکو ته یې لاسرسی اسانه وي.

رسنۍ او ټولنیز کمپاینونه: د مطالعې ارزښت ته باید په رسـنیو کې ځانګړی ځای ورکړل شي، د کتابونـو په اړه برنامـې جوړې شي او خلک وهڅول شي چې پر ټولنیزو رسـنیو د وخت ضایع کولو پر ځای کتابونه ولولي.

کتاب، د علم خزانـه، د تمدنونو د بقا راز او د پرمختګ یوازینۍ وسیله ده. که غواړو چې زموږ راتلونکي نسـلونه ښـه وروزو، باید د مطالعې فرهنګ ته وده ورکړو. ټولنه یوازې هغه وخت پرمختګ کولی شي چې وګړي یې د فکر، علم او بصیرت له نعمت څخه برخمن وي. نو راځئ، د کتاب ملګرتیا وکړو، د ښکېټې ساعت تېریو پر ځای د علم ګانه ترلاسه کړو او خپله راتلونکـي د پوهې په رڼا کې جوړه کړو. «هغوی چې مطالعه نه کوي، تل د هغو تر قیادت لاندې وي، چې مطالعه کوي. »

### د افغانستان او ...

وایي چې د روان کال په لومړیو لسـو میاشتو کې افغانسـتان هند ته د ۵۴۱ میلیونو ډالرو په ارزښـت صادرات کړي او له هنده یې د ۲۲۲ میلیونو ډالرو په ارزښت واردات کړي دي . د صنعت او سوداګرۍ وزارت ویاند، اخندزاده عبدالسلام جواد په دې اړه وایي: د ۱۴۰۳ کال په وروستیو لسو میاشـتو کې د افغانستان او هند ترمنځ د راکړې ورکړې کچه ۷۶۳ میلیونه ډالـره ده ،چې په دې کـې ۵۴۱ میلیونه ډالره واردات او ۲۲۲ میلیونه ډالره صادرات شـامل دي. پـه صادراتو کې ممیز، انځـر، انجه او نور توکي شـامل وو.بله خوا، د سوداګرۍ او پانګونې خونه چې د هند بازارونه د افغانستان د محصولاتو لپاره یو ښـه مارکېټ ګڼي او د سوداګریزو وېزو په برخه کې سوداګرو ته د نورو آسانتیاوو پر رامنځته کېدو ټینګار کوي.د سـوداګرۍ او پانګونې خونې د مدیره پلاوي غړي، خان جان الکوزي وایي: له هند سره زموږ اړیکې ښې دي او له دې زیات امکانات شته ،چې له هند سره زموږ کورنۍ سوداګري او د هغوی واردات هم کم شـوي ،ځکه لامل یې د ویزې نه ورکړه ده. یو شمېر سوداګر هم د سـیمې له هېوادو په ځانګړې توګه له هند سره د سوداګریزو سـتونزو د حل لپاره د یوه ځانګړي کمېسیون د جوړېدو غوښتنه کوي. یو سوداګر، امید حیدري بیا وایي: یوه صادراتي او وارداتي ستراتیژي باید جوړه شي. کمیسیون هم باید جوړ شي او ټولې کمېټې پکې شاملې وي. موږ بیا کولای شو د دغو کمیټو له لارې د ویزې، ترانزیټ، سوداګرۍ او صادراتو اړوند خپلې ټولې سـتونزې حل کړو، ځکه موږ ته د صادراتـو فرصت هغه مهال پیدا کیږي چې زموږ صادرات ختم شوي وي. له دې وړاندې د بهرنیو چارو وزارت سرپرست د هند د بهرنیو چارو د وزیر له مرستیال سره د ډیپلوماتیکو اړیکو د زیاتېدو، د سوداګرو لپاره د آسانتیاوو د برابرېـدو او د اقتصادي او سـوداګریزو اړیکو د پراختیا په تـړاو خبرې کړې وې او د هنـد د بهرنیو چارو وزارت مرسـتیال ویلي وو، چې نوې ډیلي له افغانسـتان سره د سیاسي او اقتصادي اړیکو د پراختیا غوښتونکې دی.

### سرکال له غور ...

د یادونې وړ ده چې د غور منار جام په شهرک ولسـوالۍ کې موقعیت لري او په ۱۳۸۱ کال کې د یونسـکو نړیـوال سـازمان د نړیوالو میراثونو لېست کې ثبت شوي دي.

### هرات کې یوه ...

پر مهال د کورنیـو تولېداتو پر ملاتړ ټینګار وکـړ او زیاته یې کړه، چې پـه هېواد کې د تولیـدي توکو زیاتوالی د اقتصـادي ودې او د هېواد د وګړو لپاره د کار په برابرولو کې مهم رول لوبوي او اسلامي امارت هڅه کوي، چې د پانګوالو لپاره مناسب چاپېریال برابر کړي. ورته مهال د یاد ولایت د صنعت او سوداګرۍ رئیس مولوي بشـیر محمد سیرت وویل، چې اوس مهال په دغه ولایت کې د رنګ جوړونې په برخه کـې پنځه کارخونـې فعالیت لري او دغـه ولایت د رنـګ د تولېد په برخه کې بشپړې خودکفایۍ ته رسیدلی دی. د یادونې وړ ده، چې په ټـول هېواد کې د رنګ د تولېد په برخه کې ۶۰ کارخونې شتون لري او د رنګ په برخه کې تـر ډېرې کچې یې کورنۍ اړتیا پوره کړې ده.

### افغانستان د چرګانو غوښې...

بیضې هګۍ واردیږي، چې نږدې لس میلیونه افغانۍ محصول یې د دولت خزانې ته ورځي.

### فراه کې د یوه...

سره جـوړ شـوي، چې په یـوه وخت کې د ۷۰۰ لمونځ کوونکـو ظرفیت لري.د جومات د جوړېدو په جریان کې د سـیمې یو شـمېر اوسـېدونکو ته د کار زمینه هم برابره شوې وه.د یادونـې وړ ده چې د اسـلامي امارت په حاکمیت سره پـه ټول هېواد کې سـلګونه جوماتونه جوړ او ګټې اخیسـتنې ته سپارل شوي دي.

### د حضوري چمن...

فرهنګي ارزښت، عبادتي ارزښت، عبادت او نورې ټولګټې چارې په پام کې ونیول شي.یاد وزارت زیاتوي: د غونـډې ګډونوالو هر یو خپل نظر وړاندې کړ او تصمیم ونیول شـو، چې په دویمه ناسـته کې چې په روانه اوونۍ کې به ترسره شي، د ملکیت او ترې د سـالمې ګټې اخیسـتنې په پار منظمه او غني طرحه جوړه، دلایل او اسـناد وړاندې او په ټوله کې د کمېټې وروستۍ خبره د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله ) مقام ته د وروستي تصمیم نیولو په موخه وړاندې کړي.د کور او ښار جوړولو وزارت مشرتابه هڅې کوي ،چې د حضوري چمن په تـړاو د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله) حکم له کوم ځنډ او خنډ پرته په سـمه توګه پلې، ملکیت معلوم او ترې سـالمه ګټه پورته شي.

### افغانستان کې د بشري ...

مالي او اقتصادي تحریمونو سربېره؛ د افغانانو څه باندې ۹ میلیارده ډالره اسعاري زېرمې چې د هغوی شـتمنې ده؛ هم کنګل شوې ،چې له امله یې د افغانستان ملي اقتصاد اغېزمن شوی دی.د اقتصـاد وزارت د امریکا له خوا د یادو زېرمـو د تخصیص، کارولو او لېږد په اړه هر ډول اقـدام د نه منلو وړ بللي او پر نړیوالې ټولنې او هېوادونو یې غږ کړی چې دغه مالي سرچینې دې د افغانستان بانک ته وسپاري، څو په افغانسـتان کې د پولي ثبات د ساتلو، د مالي سیسـتم د پیاوړتیا، له نړۍ سره د سوداګرۍ د آسانتیا او اقتصادي ثبات لپاره ترې ګټه پورته شي.

### اسلامي امارت له ټولو ...

ته رسـېدلی، د جرمني په ګـډون غواړي له ټولو هېوادونو سره ښې اړیکې ولري. جرمني یو داسـې هېواد دی، چې لـه تاریخي پلوه له افغانسـتان سره اوږدمهالي، ښې او د باور وړ اړیکې لري.))د سیاسي چارو شنونکی، زلمی افغانیار وایي: ((دا خـبرې دوه اړخیزې دي؛ له یوه لـوري اسـتخباراتي دي او له بلې خوا مطبوعـاتي. هیله لرم چې له افغانسـتان سره اړیکې د ملي ګټو د سـاتنې پر بنسټ جوړې شي، نه ولس او نه هم حاکمیت زیانمن شي.)) دا په داسـې حال کې ده، چـې له دې وړاندې د جرمني د بهرنیو چـارو وزیر ویلي و، چې له افغانسـتان سره یې د هېواد پیوسـتون نه ماتېدونکی دی.

### د جلغوزیو د صادراتي ...

سکتور د سـوداګرو ترمنځ ناسالم رقابت به ډېر ژر پای ته ورسېږي او ټول سوداګر به په واحده اتحادیه کې سره راټول شي.

هېره دې نه وي چې اوسـمهال د افغانسـتان جلغوزي، چـین، هند او یو شـمېر اروپایي هېوادونو ته صادرېږي.

### ارزګان کې د ...

عادلانـه پربکـړه تـرسره کـړې ده.هغوی له اسـلامي امارت څخه مننه وکـړه، چې د خپلمنځې شـخړو د هوارولو لپاره یې ساري هڅې کوي او په بې پرې ډول پربکړې کوي، چې په پایله کې یې د هېواد د نورو ولایتونو په څېر په دغه ولایت کې دا او دې ته ورته نورې دښمنۍ ختمې شي.

### کاپیسا کې ...

چې هغوي ته د ۵ ښـوونځیو او ۲ روغتیایي مرکزونو لـه لارې د زده کـړو او روغتیایي خدمتونو زمینه برابره شـوې ده.په روان کال کې د کوچیانو د مالونو د سـاتنې لپاره ۶۷۵۰۰ ډوزه د (آر پي پي) واکسـین تطبیق شوي دي، د دې ترڅنـګ د ژمي لپـاره د ۳۵۷۰ متریک ټنه خوراکي موادو چمتووالي هم نیول شوي دي.صیاد زیاته کـړه چې په روان کال کې له ۱۰۰ څخه زیاتو سـیمو ته سـفرونه شوي او جرګې ترسره شـوي او له لارې یې د اسلامي امارت پالیسي تشریح شوې ده.صیاد د کاپیسا له شریفو خلکو غوښتنه وکړه چې په سوله، ورورګلوۍ او یووالي کـې ژوند وکړي او له اسلامي امارت سره له هر ډول همکارۍ څخه دریغ ونه کړي. ده همدارنګه خلک هڅولي چې د قومي شـخړو په حل کې له دې اداري سره مرسـته وکړي ترڅو په دغه ولایت کې ثبات ټینګ شي.

### د کونړ ولایتي روغتون ...

ناروغیو دبسـتر ځانګه، دکوچنیانو دبستر عمومـي ځانګـه، د شـدیدې خوارځواکۍ د بسـتر ځانګه، دنویو زیږیدلو ماشـومانو دبستر ځانګه، د نسایي ولادي نا روغیو دبستر ځانګـه، درواني ناروغیو دبسـتر ځانګه، د سـترګو داخل بسـتر خدمات او تشـخصیه خدمات تـر سره کېږي.هغه وایـي، چې په روغتون کې بیرنیو پېښـو ته د رسیدنې په مو خه مجهـزې بیړنۍ خونې او جلا پرسـونل شـتون لري.ده وویـل، چې پـه کال کې یو ځل دسترګو دناروغانو لپاره کیمپ جوړیږي او تراوسـه یو کیمپ جوړشوی چې تقریباً ۲۰۰ عملیاتونه او تـر۲۰۰۰ د زیاتو ناروغانو درملنه پکې شـوې او یو شمېر ناروغانو ته عینکې هم ورکړ شوې دي، همدارنګه په تېره میاشـت کې له ۳۰۰ څخه زیات بېلا بېل لوی عملیاتونه د متخصصـو ډاکټرانو له خوا هم تر سره شوي دي. نوموړي وایي، چې د کونړ ولایتي روغتون دامهال د ۱۵۰ بسترو ظرفیت لري چې کفایـت نه کوي بایـد ۲۰۰ ته لوړ شي.په همدې ترتیب دیاد روغتون رئیس وایي، که چېرته دعامې روغتیا وزارت او د اسـلامي امارت مشران یاد روغتون ته معیاري ودانۍ، طبي وسایل او روغتیایي پرسونل زیات کړي او درمل روغتون ته راونیسي په دې سره به د روغتون ټولې ستونزې او مشکلات حل شي .ډاکټر مولاداد افضل زیاته کړه، چې د اسلامي امارت په راتـګ سره دکونړ ولایتي روغتون کې ډېرې غیر فعالې برخې بېرته فعالې شـوي دي.د روغتون رئیس د ځینو سـتونزو یادونه هم وکړه، چـې د معیاري ودانۍ نشـتون، د عمومي اي سي یو لپاره ځانګړي پرسـونل او د ځای نشـتوالي، د ځینو ضروري تشـخصیه او لابراتواري خدماتو نه شـتون، د بسترونو کموالي او داسې نور.

له نورسـتان څخه یـو تن ناروغ انعـام الله وایي،ډېرخوښ اوخوشحاله یم چې عملیات مـې په خپل هېواد کې په بریالۍ توګه ترسره شـول، نوموړي زیاته کـړه: د روغتون ټول روغتیایي پرسونل وخت پر وخت د ناروغانو کتنه او معاینات کوي او موږ ترې خوشحاله یو.پـه پای کـې د نوموړي روغتـون رئیس خوښـي ځرګنده کـړه چې خپـل ملت ته د روغتیا په برخه کې خدمت وړاندې کوي .

سمیع الله مومند

### د ننګرهار دوهمه ناحیه...

او قراردادي شرکتونه مکلف ګرځول شـوي ترڅو د ورکړل شوي پروپوزل له مخې ټول کارونه په معیاري او باکیفیته توګه ترسره کړي او پـه ټاکلي وخت کې د یادې پروژې کارونه بشپړ کړي. زیارمل هوتک

# Hewad Daily

یکشنبه د شعبان المعظم ۳ یمه ۱٤٤٦ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د سلواغې ۱۴ مه د 2025م کال د فبروری ۲ یمه



د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲٦۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل - افغانستان
داړیکو شمېره: س ۰۲۰ - ۲۵۲٦۳۴۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ویب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع خانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷٦٦۰۴۴۹٦٦-۰۷۳٦۰٦۰۷۳


## ذبیح الله مجاهد: اسلامي امارت له ټولو هیوادونو سره ښې اړیکې غواړي



د جرمني د پارلمان څېړنیزه کمېټه په افغانستان کې د دې هېواد د شل کلن حضور په تړاو د راپور په خپرولو سره وايي ،چې په افغانستان کې د جرمني ماموریت ناکام شوی دی. د دې کمېټې مشر د افغانستان له حکومت سره پر خبرو د ټینګار ترڅنګ زیاته کړې ده، چې دغه چاره باید له هغوی سره د هملاسۍ په مانا نه شي. د اسلامي امارت ویاند ذبیح الله مجاهد، د دې راپور په غبرګون کې ویلي ،چې جرمني په تېرو شلو کلونو کې د افغانستان په اشغال او د هېوادوالو په ځورولو کې لاس درلود، چې باید جبران شي.نوموړی دغه راز د کابل او برلین ترمنځ د اړیکو پر احیا په ټینګار سره وايي ،چې باید د کابل او برلین ترمنځ تعاملات بېرته عادي او مثبت شي.ښاغلي مجاهد په دې اړه وايي: (( له بده مرغه، جرمنیان شل کاله د افغانستان په اشغال کې ښکېل وو او په قتل، وژنو او همداراز د خلکو په ځورولو کې یې لاس درلود. دا باید تلافي شي. دا چې اسلامي امارت واک **۳مخ**

## د هیواد لرې پرتو سیمو کې د روغتیایي خدمتونو پر وړاندې کولو ټینګار وشو



د عامې روغتیا وزیر مولوي نور جلال جلالي په خپل کاري دفتر کې د Save the children ، World vision، IMC او CRS موسسو له مسئولینو سره لیدنه وکړه.په دې لیدنه کې د هېواد په لرې پرتو سیمو کې د روغتیایي خدمتونو پر وړاندې کولو، د مور او ماشوم برخې روغتیایي خدماتو ته پر لا زیاتې پاملرنې، د افغان روغتیایي پرسونل په ظرفیت لوړولو او په اغېزمنه توګه د روغتیایي خدماتو د تطبیق اړوند خبرې وشوې.مولوي نور جلال جلالي ولسونو ته په معیاري توګه د روغتیایي خدماتو په وړاندې کېدو ټینګار وکړ او په همدې موخه یې د یادو موسسو له استازو وغوښتل، چې د روغتیایي خدمتونو د وړاندې کولو پروسه په اغېزمنه توګه تطبیق کړي.بل لور د یادو موسسو مسئولینو ډاډ څرګند کړ، چې د روغتیا وزارت سره د ګډې همغږۍ له لارې به ولسونو ته په معیاري توګه روغتیایي خدمات وړاندې کړي.

## د جلغوزیو د صادراتي سکتور اتحادیه جوړېږي

د صنعت او سوداګرۍ وزارت سرپرست نورالدین عزیزي، په هېواد کې د جلغوزیو سکتور له سوداګرو سره کتلي دي.د صنعت او سوداګرۍ وزارت د معلوماتو له مخې؛ په دې کتنه کې د جلغوزیو د سوداګرو ستونزې شریکې شوې او د جلغوزیو د پروسس فابریکو پر جوړولو ټینګار شوی دی.

دغه راز د جلغوزیو پر صادراتو، د دغه سکتور پر ملاتړ او په هېواد کې د جلغوزیو مارکېټ پر جوړولو بحث شوی دی.د صنعت او سوداګرۍ وزارت سرپرست د جلغوزیو سکتور د سوداګرو د خبرو په اورېدو سره؛ له هغوی څخه د بشپړ ملاتړ ډاډ ورکړی او ویلي یې دي ،چې د دغه **۳مخ**

## بهرني لنډ خبرونه

### له غزې ترانګې د فلسطینیانو اېستل نژادي تصفیه ده



د ملګرو ملتونو عمومي منشي انتونیو ګوتریش له غزې د فلسطینیانو اېستل دې ترانګه کې قومي تصفیه بللې او خبرداری یې ورکړی، چې دا ډول هڅې غزه کې د تلپاتې ستونزې حل ناممکنوي. ګوتریش العربیه خبري شبکې سره خبرو کې له غزې د فلسطینیانو د جبري اېستلو پرېکړې سره مخالفت کړی او د حماس او اسرائیلو ترمنځ یې د اوربند پر دوام ټینګار کړی دی. له دې وړاندې ډونالډ ټرمپ تېره اوونۍ څلور ځلې غزې څخه مصر او اردن ته د فلسطینیانو د جبرې ویستلو خبره کړې، خو مصر او اردن بیا د ټرمپ له دغې طرحې سره مخالفت کړی دی. د امریکا ولسمشر ادعا کړې ،چې له دغې طرحې څخه یې موخه له جګړو او نا امنیو د فلسطینیانو ژغورل او د هغوی د امنیت او هوساینې تضمینول دي. د چارو شنونکي بیا د ټرمپ همدې درواغجنې خواخوږۍ ته په اشارې وايي، د غزې د خالي کولو پر ځای دې واشنګټن د تل ابیب له سیاسي او نظامي ملاتړه لاس واخلي، **۳مخ**

### امریکا کې د یوې الوتکې د لوېدو له امله ګڼې ودانۍ سوځېدلي

امریکایي رسنیو ویلي، یوه طبي امبولانس جېټ الوتکه چې یو ناروغ ماشوم او پنځه نورې سپرلۍ یې لېږدولې وړم ماښام هوا ته له پورته کېدو لږ وروسته د امریکا د پنسلوانیا ایالت د فیلادلفیا په استوګنیزه سیمه کې غورځېدلې. د اسوشیټیډ پرېس د راپور له مخې دې پېښې یوه قوي چاودنه او پراخ اور رامنځته کړ چې له امله یې ګڼ کورونه وسوځېدل. **۳مخ**



### کانګو کې ۳۵۰۰ تنو ته مرګژوبله اوښتې

د ملګرو ملتونو د عمومي منشي ویاند ستیفاني دوجاریک وړمه ورځ ویلي، د کانګو شمال ګوما ښار کې له تېرې یکشنبه ورځې راپه دې خوا وسله والو بریدونو کې شاوخوا ۷ سوه تنه وژل شوي او ۲۸۰۰ نور ټپیان دي. سي ان ان کانګو کې د خپلو سرچېنو په حواله ویلي، دغه هېواد کې د ایم ۲۳ په نوم وسله واله ډله چې د دوې ګاونډۍ هېواد روونډا یې ملاتړ کوي د کانګو پوځ سره جګړه کې ښکېل دي. سرچېنه وايي، دغه وسلواله ډله هڅه کوي چې جګړه د کانګو د دیموکراتیک جمهوریت د پایتخت کینشاسا په لور هم وغځوي. ایم ۲۳ وسله واله ډله د کانګو له پوځ څخه شاوخوا یوه لسیزه وړاندې د توتسي اقلیت په دفاع بېله شوه، توتسي اقلیت له اوږدې مودې راهیسې له ستم او تبعیض سره مخ دی.



## کاپیسا کې ۲۳۰ شخړې او دښمنۍ حل شوې

د کاپیسا ولایت د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو ریاست مسئولین وايي چې د اسلامي





امارت له بریا وروسته په دې ولایت کې ۲۳۰ شخړې او دښمنۍ حل شوې دي.

د کاپیسا ولایت د یاد ریاست د سرحدونو آمر ملا صدیق الله صیاد باختر اطلاعاتي اژانس سره په ځانګړې مرکه کې ویلي چې د اسلامي امارت له بریا وروسته په دغه ولایت کې ۲۳۰ لویې شخړې او دښمنۍ حل شوې دي.ده زیاته کړې چې په روان لمریز کال کې د ولایت د مقام، استیناف محکمې او د امنیتي ادارو له لورې له ۱۰۰ څخه زیات شکایتونه دغه ریاست ته رسېدلي، چې ۱۰ یې د حل نهایي مرحلې ته رسېدلي دي.صیاد وویل: « په کاپیسا کې د ۲۰۰۰ کورنیو په شاوخوا کې کوچیان ژوند کوي، چې په الهساي، تګاب، نجراب، حصه دو کوهستان او مرکز کې مېشت دي.»ښاغلي صیاد زیاته کړې **۳مخ**

## غزني کې ترافیکي پېښې ۷ تنو ته مرګ ژوبله اړولې

د غزني ولایت د امنیې قوماندانۍ مسئولین وايي چې په مقر ولسوالۍ کې د کابل-کندهار پر لویه لاره د یوې ترافیکي پېښې له امله ۷ کسانو ته مرګ ژوبله اوښتې ده.د غزني امنیې قوماندانۍ ویاند خالد سرحدي باختر آژانس ته ویلي، چې دغه پېښه د مقر ولسوالۍ په لړمې سیمه کې د دوو مسافر وړونکو موټرو د ټکر له امله رامنځته شوې چې په پایله کې یې د یوه ماشوم په ګډون دوه تنه مړه او پنځه نور کسان ټپیان شوي دي.سرحدي د پېښې لامل د موټرچلوونکي بې‌احتیاطي ښودلې ده او له موټر چلوونکو یې غوښتنه کړې چې ترافیکي اصول مراعات کړي.

## ارزګان کې د ۲ کورنیو ترمنځ روغه وشوه

د ارزګان سیمه ییز مسئولین وايي ،چې د دې ولایت په چورې ولسوالۍ کې د دوو کورنیو ترمنځ له ۱۵ کلنې دښمنۍ وروسته روغه وشوه.دغه دښمني د یاد ولایت په چورې ولسوالۍ کې د دوو کورنیو ترمنځ رامنځته شوې وه، دواړو لورو ته په کې د سر او مال زیانونه هم اوښتي وو، چې وروسته د ځایي مسئولینو، علماوو او قومي مشرانو په منځګړیتوب ورته د پای ټکی کېښودل شو.ښکېلو کورنیو په یاده روغه خوښي څرګنده کړې او له منځګړیو اړخونو یې مننه کړې، چې د دوی د شخړې په هوارې کې یې نه ستړې کېدونکې هڅې کړې او په بې پرې توګه یې غوره او **۳مخ**

## دکونړ ولایتي روغتون کې هره ورځ د ۱۲۰۰ ناروغانو درملنه کېږي

د کونړ ولایتي روغتون د مسئولینو په وینا دغه روغتون ته د نورستان او کونړ له لرې پرتو سیمو څخه هره ورځ له ۱۲۰۰ څخه زیات ناروغان د درملنې موخه مراجعه کوي او درملنه یې د متخصصو ډاکټرانو له خوا په ښه شان تر سره کېږي. دکونړ ولایتي روغتون



رئیس ډاکټر مولاداد افضل د هیواد ورځپاڼې خبریال ته وویل،چې روغتون کې د سراپا خدماتو په برخه کې د مور او ماشوم روغتیا، واکسین او معافیت، دکوچنیانو خدمات، دداخله ناروغیو خدمات، دجراحي ناروغیو خدمات، دغوږ، پوزې او ستونې د ناروغیو سراپا خدمات، د پوستکي دناروغیو ، دسترګو د ناروغیو، د توبرکلوز د ناروغیو، د غاښونو، دروانې روغتیا، دکوچنیانو دتغذې او د فزیوتراپۍ خدمات وړاندې کېږي.ښاغلي افضل زیاته کړه، چې په نوموړي روغتون کې د بستریزو خدماتو، دلویانو داخله ناروغیو د بستر ځانګه دعمومي جراحي او اورتوپیدي **۳مخ**

## د ننګرهار دوهمه ناحیه کې د سړک ویالو او پلچکونو د جوړولو چارې روانې دي

د ننګرهار ښاروالۍ د ویاند حامد محمود د وینا پر بنسټ د جلال آباد ښاروالۍ د داخلي عوایدو په مرسته د روان ۱۴۰۳ مالي کال د پراختیایي پروژو په لړ کې د دوهمې ناحیې اړوند د برښنا ریاست مخې ته د ۹،۸ میلیونه افغانیو په ارزښت د سړک، ویالو او پلچکونو د جوړولو کارونه جریان لري. له یادې پروژې څخه له نږدې څارنه کېږي او مسئولینو ته سپارښتنه کېږي تر څو کارونه په معیاري ډول تر سره کړي چې د هېوادوالو ستونزې حل او ښاري اسانتیاوو ته په اسانه لاسرسي ولري. د محمودي په وینا: په دې پروژه کې د ۴۵۰ مترو په اوږدوالي او د ۷ مترو په سور سړک، د سړک دواړو غاړو ته ۹۰۰ متره ویاله او۳ پلچکونه شامل دي چې کارونه به یې د شپږ و میاشتو په موده کې بشپړ شي. د دې پروژې په تر سره کولو سره خوښ برېښي او د ورته نورو پروژو د پلي کېدو غوښتنه کوي.نوموړي همداشان وویل: د جلال آباد ښاروالۍ رهبري درنو ولسونو ته ډاډ ورکوي چې له خپلو ټولو پروژو به پر وخت سره څارنه او مراقبت کوي **۳مخ**